## د کهرابی د تخم تولید:

کهرابی د کول کراپ له جملی څخه یوه مهمه عضوه ده او ساقه یی ډیره نمو کوی او د خوراک برخه تشکیلوی او د غذا د غنیتوب له مخی زیات ارزښت لری د ځوانو بلگونو څخه یی په نازکه مرحله کی بی له دی چی سخت او فاییری سی ورڅخه استفاده کیږی د ساقی انساج یی نمو کوی او د شلغم ریښو ته ورته دی مشهوری ورایتیانی یی په لاندی ډول دی

## کرهنیز ضرورتونه :

کهرابی د یخ موسم نبات دی او د کښت کولو وخت یی له همدی فامیل سره ورته دی د نباتاتو او قطارونو تر منځ فاصله یی ۳۰*۲۰ سانتی متره وی په ناوخته رسیدونکو ورایتیانو کی له ۳۷۵-۴۰۰ گرام او ژر رسیدونکی ورایتیانو کی له ۶۰۰-۷۵۰ گرام یوه هکتار ځمکه کی یی ضرورت دی. د ۱۰ ټنه حیوانی سری ، ۱۰۰ کیلوگرامه نایتروجن کود، ۸۰ کیلو گرامه P2O5 ، K2O5 ته په فی هکتار کی ضرورت سته.

د ټولی حیوانی سری ، فاسفورس لرونکی او پوتاشیم لروکی سری استعمال د کښت په وخت کی صورت نیسی او د نایتروجن کود په دوو وختونو کی په مساوی توگه استعمالیږی اوله برخه یی دنهالی کردن په وخت کی او دوهمه برخه یی د نهالی کولو څخه یوه میاشت وروسته استعمالیږی او نور کرهنیز عملیات یی د کرم د نبات سره ورته دی

## د تخم د تولید تخنیک:

ذکر سوی نبات خپل د استراحت دوری د له منځه وړلو لپاره یخی هوا ته ۴-۱۰ درجو د سانتیگراد پوری د حوت څخه د ثور تر میاشت پوری ضرورت لری په تجارتی توگه د کهلرابی تخم د تولید لپاره د ځای پر ځای طریقی څخه استفاده کیږی.

دری نوع نباتات د گل د تولید په وخت مشاهده کیږی د شاخچو له نظره د گل ساقی عبارت دی

۱ هاغه نوع چی بیدون دی شاخچو وی

۲ متوسطی شاخچی تولید وی

۳ د مکملو شاخچو تولیدول

هغه نوعی چی زیاتی ښاخچی تولیدوی په هغه کی د تخم تولید زیات وی په دی ځای کی د درو سرو نوعو تخونه ښه وی او د کښت پاک کاری د گل کولو په وخت کښی ضروری دی.

د کهلرابی د ورایتیانو او د کول کراپ د نورو نباتاتو تر منځ فاصله باید ۱۰۰۰-۱۶۰۰ متره په نظر کی ونیول سی او گرده افشانی یی د کرم نبات ته ورته ده

## د کښت پاک کاری:

د کښت پاک کاری معمولاً په درو مرحلو کی ترسره کیږی

a. د جسمانی نمو په وخت کی
b. د گل د جوړیدو په وخت کی
c. هغه نباتات چی مریض وی هغه باید ایسته سی

## د حاصل راټولول:

د حمل او حوت په میاشت کی چی د حرارت درجه ۱۰-۱۳ درجی د سانتیگراد وی د تخم ساقه اوږدیږی د حمل په اوله یا دوهمه هفته باندی د حرارت په ۱۳-۱۸ درجو کی گل جوړیږی د کهرابی نبات گل او میوه د حمل د میاشتی له اخری څخه با د ثور د میاشتی تر اخری پوری تشکیلیږی پولی یی د جوزا په اخره کی پخیږی او د حاصل راټولونه یی د سرطان د میاشتی تر دومی هفتی پوری دوام کوی که د جوزا او سرطان په میاشتو کی اوسط د جرارت درجه تر ۲۰ سانتی گراد کمه وی نو د تخم پخیدل یی د سرطان تر اخره پوری ځنډیږی.

ددی لپاره چی د تخم د توئیدو څخه مو مخنیوی کړی وی باید په دوو یا دریو مرحلو کی تخ د ساقی سره راټول سی معمولاً هغه نباتات چی وختی کرل سوی وی اول چی کله د پولی رنگ یی د ۶۰-۷۰ فیصده پوری ژیړ نصواری ته تغیر وکړی راټول سی راټول سوی حاصل ته باید له ۴-۵ ورځو وروسته سره واړول سی او بیا د ۴-۵ ورځو لپاره پریښودل سی راټول سوی حاصل باید د لرگی په واسطه میده سی او د لاس په واسطه پاک سی راټول سوی حاصل بای وچ ، پاک او ذخیره سی په فی هکتار کی یی حاصل ۶۰۰-۷۵۰ کیلوگرام لاس ته راځی چی زر دانی تخمونه یی د ۲،۳ گرام په حدودو کی وزن لری.

## د براکولی تخم :

براکولی د کول کراپ د سبزیجاتو څخه دی او په مختلفو منطقو کی د اقلیم په مساعدولو سره نمو او انکشاف کوی براکولی د شرقی مدیترانی او ایتالیا بومی نبات دی د براکولی نوم د brocco له کلمی څخه اخیستل سوی دی چی د ځوانی ساقی د انکشاف په معنی دی او د سبزی په ډول استعمالیږی د براکولی لپاره په غټو ښارونو کی زیاتره تقاضا وی او مصرف یی هم زیات وی د براکولی نبات د عادت په نظر کی نیولو سره شین پندک د گل ساقه یی پنډه غوښینه او نرمه وی او د براکولی د تخم تولید نظر گلپی ته اسانه دی د گلپی د تخم تولید دوو موسمونو ته ضرورت لری اما د براکولی تخم په عین فصل یا عین کال کی تولیدیږی دا نبات د ضرورتونو په اساس د گلپی نبات سره لږ تفاوت لری

## کرنیز ضرورتونه :

د براکولی ضرورتونه کول کراپ ته ورته دی اقلیمی او د خاوری شرایط یی کرم نبات ته مشابه دی براکولی نبات زیاتره په گرمو او مرطوبو شرایطو کی توافق لری زیاتره په یخو میاشتو کی کرل کیږی په اوله مرحله کی په قوریه کی تخم د سنبلی په ۲۰ کرل کیږی او وروسته د کښت د ساحی په برابریدلو سره د میزان او عقرب په میاشتو کی د کښت ساحی ته انتقالیږی د براکولی نبات زراعتی عملیات گلپی ته ورته دی

## اقلیم :

براکولی د لوړ حرارت په مقابل کی زیات حساسیت نلری او کښته حرارت د براکولی د تخم د تولید لپاره ضروری ندی او د کرم په ډول دی په اوسط ډول له ۲۰ سانتی گراد څخه لوړ حرارت د گل پندکونه له وخت څخه مخکی خلاصوی چی په نتیجه کی براکولی نامناسب او بلگی کیږی براکولی نسبتآ د یخ په مقابل سخت وی بیا هم دا د نبات ورایتی او نمو ته مربوط دی یو کلنی ورایتی نسبت دو کلنی ورایتی د بدنی نمو په مرحله کی د یخبندان په مقابل حساس وی ولی نبات د گل کولو په وخت کی یخبندان د گل د یخوښلو باعث کیږی چی په نتیجه کی د پنډک خوشه په نصواری رنگ او گنده کیږی په دا ځای کی دو نوع د تخم تولید وجود لری

١.. یو کلن دا ورایتی زر رسیدونکی وی او کولای شی په استوایی او نیمه استوایی کی تخم تولید کری

٢.. دوکلن دا ورایتی نا وخته بخیژی خاص اقلیمی شرایتو ته ضرورت لری او دا له نورو کول کراپ ته ورته ده

د براکولی نمویی دوره د کښت څخه د گل تر تولیده لنده وی د گلپی څخه نا وخت کرل کیژی د دوکلن تخم نوع آسانه ده په دی خاطر چی نمو یی یخبندان تحمل کوی او ژمی دوره په مزرعه کی تیروی او یو کلن یی د یخبندان په مقابل کی مقاومت نه لری او په یخو مناطقو کی د تخم تولید امکان نه لری او د تخم تولید طریقه یی گلپی ته مشابی ده

# کیمیاوی کود

په حدود ۱۰ـــ۱۵تنه حیوانی سره په فی هکتار کی علاوه شی کیمیاوی کودونه NPK په مقدار ۲۰۰،۱۰۰،۱۰۰ کیلو گرامه په فی هکتار کی سفارش شوی دی ټول کودونه فاسفورس او پتاشیم د قلبی په وخت کی استعمالیږی او نایتروجن کود به چلورو مرحلو کی ورکول کیږی په اوله مرحله کی د فاسفورس او پتاشیم سره او دوهمه مرحله ۲۵ـــ۳۰ ورځی ورسته د نهال کولو او دریمه مرحله ۳۰ ورځی وروسته د دوهمی مرحلی څخه او آخری مرحله د گل کولو څخه مخکی استعمالیږی د کښت فاصله ۴۵ په ۴۵ سانتی متر

او د یو کلنی ورایتی زر رسیدونکی او ۴۵ په ۶۰ سانتی متر او د دو کلنی ورایتی لپاره زر نه رسیدونکی په نظر کی نیول کیږی

# د براکولی گل

مرکزی نمویی نقطه د پنډک شاخچی سره د گوشتی گل ساقه او د هغه هر قسمت د براکولی خورلو وی او د گل ساقه لنډه وی د پنډک نوی گل نورمال انکشاف کوی چی هر یو یو بل سره اتحاد کوی چی د سر په نوم یادیږی کله چی د براکولی پنډک را خلاص شی د براکولی سر خپل کیفیت له لاسه ورکوی د گل پروسس په ښکته درجه کی شروع کیږی ولی گرده افشانی او د تخم تشکیل په اوسط ډول د ۱۵ څخه په لوړه درجه سانتی گراد کی صورت نیسی گل کول د ښکته نه پور ته اول په جانبی وسط کی شروع کیږی او گلونی صاف وی او په ټولو نباتوتو کی هم زمان شروع کیږی او د ورځی حرارت په منځ ۲۰ـــ۳۰ درجی سانتی گراد د گرده افشانی لپاره اود تخم تشکیل مناسب وی لور حرارت باعث د عقیم کیدل او د تخم تشکیل کم صورت نیسی د گل دوره یی نسبت د کرم نه لنډه او گلپی ته مشبابی وی د تخم اندازه ورایتی زر رسیدونکی یو کلن ۶۰۰ـــ۷۵۰ گرام او د زر نه رسیدونکی ورایتی دوکلن ۵۰۰ـــ۶۰۰ گرام تخمین شوی دی

# د فارم پاکسازی

د فارم پاکسازی په دری مرحلو کی عملی کیږی

۱ـ اوله مرحله مارکیت لپاره مخکی د حاصل تولید

۲ـ دوهم مرحله په هغه وخت کی چی د مارکیت سایزم نیولی وی

۳ـ دریمه مرحله د گل تشکیل په وخت کی

## د حاصل جمع آوری

د گل شگوفی تشکیل په دلو او حمل په میاشت کی صورت نیولی د جوزا په میاشت تخم کله چی ۷۰ فیصده پولی گانی په نصواری رنگ او د نبات باقیمانده زر نصواری ته تغیر خوری او جمع آوری کیږی جمع آوری د صحار له طرف صورت نیسی تر څو د تخم د تویدو څخه مخنیوی وشی د براکولی د تخم تولید تخنیک مشابه ده د گلپی تخم ته په حدود ۸۰۰ـ۱۰۰۰ کیلوگرامه تخم په فی هکتار ځمکه کی تولیدیږی